# شورمې د قلم پهژبه راوله



چې بلې کړم د فکر او شعور لمبې
شورمې د قلم په ژبه راوله

محمد الیاس الیاسؔ

د کتاب نوم ______ شور مي د قلم په ژبه راوله

لیکونکے ______ محمد الیاس الیاسؔ
(0346-2860464)

د چاپ کال ______ ۲۰۰۸ (اول ځل)

د چاپ ځائے ______ المظهر پریس بټ خیله

شمیر ______ پنځه سوه

کمپوزنګ ______ سردار الملک بابو

ټائټل ______ محمد الیاس بابو

بیعه ______ (اتیا روپۍ) ۸۰

## د موندلو درکونه

- یونیورسټی بُک ایجنسی خیبر بازار پیښور
- حزب الله بُک سنټر طوطه کان
- ضیاء بُک سنټر زیارت حصار بابا
- مُسلم بُک سنټر درګئ
- شاه بُک سنټر بټ خیله

# ترون

د خپل ماما نثارمحمد نثارؒ

د ځوئی عادل محمد په نامه چې

د پښتو ادب سره ئې بې کچه مینه لرله

محمد الیاس الیاسؔ

## الياس د منزل په لور

د ګل ورينو ګلدرو د ښائيستونو وطن ملاکنډ چې د قدرت د رنګينو نظارو د هسکو دنګو لوړو غرونو مرغزارونو ښکلا د نخترو او ديارو شنها د شنو شنو ورشوګانو دشتونه اؤ په تېره تېره د سوات د سيند د غاړې حسينې نظارې د يو حساس زړګی اُودهٔ خيالونه داسې راپاروی چې سړے خامخا په نازکو ليکلو اؤ وئيلو مجبور کړی اؤ بيا يو داسې تعليم يافته ځلمے چې تر داوخته ئې د دُنيا د ډېرو مختلفو ملکونو سفر هم کړے دے او لا نور هم په تګ دے به اورمرو په دے ليکلو مجبوريږی۔

چې بلې کړم د فکر او شعور لمبې
شور مې د قلم په ژبه راوله

د دې شعر خالق محمد الياس الیاسؔ چه دا ورستنۍ مصرعه ئې د کتاب نوم دے۔ د مارچ د مياشتې په دوئمه نېټه نولس سوه اتيا کښې د طوطه کان کلی د استوګن حاجی فريدالله خان هيډ ماسټر چه د سنيئر سټاف صدر هم دے د يوسفزو د سلطان خان خېل د ذېلی شاخ اسماعيل خېل سره تعلق لری کره سترګې اوغړولې۔نيکه ئې دخپل وخت يو نومورے مشر تېر شوے دے چې د حاجی اسماعيل خان په نوم يادېږی۔

ښاغلی الیاسؔ په خپل کلی کښې د ابتدائی تعلیم حاصلولونه پس F.Sc: د پېښور پبلک سکول نه په ښو نمبرو کښې پاس کړه په2000-1999ء کښې ئې د پاکستان میرین اکیډمی نه د جهاز رانۍ تعلیم حاصل کړو. د 2002ء نه تر اوسه په پاکستان نیشنل شِپنګ کارپوریشن کښې د نیویګیشن افسر په حېثیت خپلې ذمه وارۍ تر سره کوی. دے د دُنیا په ګُټ ګُت کښې ګرځیدونکے سېلانے په لیدلے شوو ملکونو کښې چې کوم څه لیدلې دی اوُ د کوم څه نه متاثره شوے دے هغه ئې د قلم په ژبه د ادب دُنیا ته سپارلی دی. لکه د جبرالټر په لیدووائی

دیدن ئې راته تېری د اسلام خبرې اوښودې
ښکلا ئې راته واړه په ماښام خبرې اوښودې
دےځائے کښې د طارق د تورے شړنګ دے لا تر اُوسه
دے ځائے راته د خپل اصلی مقام خبرې اوښودې

نوی خیالات نوی حالات د سپرلی د ښائیستونو رنګینۍ نوی ردیف او قافیې، نوی تشبیهات اشارے او کنائے او د قدرتؔ د حسینو نظارو حسین ښکلی اوُ ښائیسته رنګونه د الیاس په غزلونو نظمونو او سندرو کښې سم په ګډا ګانو دی لکه چې وائی

پرېږدوئ چه ګل شي پسرلے ځمه شيندمه

د زړهٔ په پرهرونو مې لمبې ځمه شيندمه

او يا دا شعر

د اسرافيل شپېلۍ به ويښ مې نهٔ کړي

د بنګرو شړنګ به دِ محشر جوړوي

ښاغلی الياس د خيالي محلونو او قلاګانو جوړولو نه سنده کوي

اؤ د حقيقت په لټون کښې دے لکه چې وائي

ژوند کښې حقيقت غواړه د خيال قِصو ته مهٔ ګوره

رنګ لټوه نُور او د جمال قِصو ته مهٔ ګوره

د منزل په لټون کښې ئې پښې تنهاکې دی

په نظر نه راځي په غټو ګورم ورته

د پښو تنهاکې مې پولۍ شوې د منزل په لټون

ولې بيا هم ښاغلی شاعر د منزل په لور په ټک کښې د نوی کل

د ملګرتيا په اړانه خپله کاميابۍ سرګنده وی اؤ ښهٔ په جار حانه

انداز کښې وائي

مونږ سره د کلي ماشومان په بله شوی دی

داخلې مو واورئی د چا پلار مخه نیوې نهٔ شی

د خپل حق غوښتو آوازې دارنګ پورته کړے دے

اوس به په سرو سترګو یه ملګرو دلته نهٔ کرځو

مونږه کښې د حق غوښتو جذبه راویخه شوې ده

هر شاعر د خپلې خاوړې او خپل وطن سره بې کچه مینه لری

او د غېرو د غلامۍ نه د ځان بچ ساتلو د پاره خلق بیداروی

الیاس په دے حقله وائی

واکې د وطن به مې د غیرو لاس کښې ورنهٔ کړم

په ژبه د قلم ځما تپه راویخه شوی ده

د اتفاق اؤ اتحاد درس دارنګه ورکوی

تر څو به بېل یو د یَو بله داسې بېل په وطن

راځئ چې یو شو سره خپلو کښې د قام په رنګې

ښاغلے هر هغه څوک درویش ګڼی چې د خپل نفس د ارمانونو

قاتل وی۔

کۀ د نفس د ارمانونو قاتل نۀ شوے
هسې ځان خاوړې کول درویشی نه ده
د خپله خدایه خپل مرګ د جانان په غېږه کښې غواړی
ژوندمې په یادونو کښې تېر شوے دے
مرګ مې د جانان غېږی له راوله
د چایا دونۀ ئې زړۀ کښې داسې زرغونېږی
عرش کښې پسې چغې فرشتو کړلې
بیا مې د چا یاد زړۀ کښې زرغون شولو
د خپلې پوهې په باره کښې وائی
خلقه زما د پوهې ناپ له پیمانې مۀ ګورئ
چه شم په سترګوکښې مد هوشه راته هوش لیده شی
ددے شعر نه ئې هم خوندونه واخلئ
سپوږمۍ خو هر وخت په وریځو پټه نۀ وی
تورو زلفو نۀ دې سپین مخ رابهر کړه
هر څوکۀ د الیاس شاعری لا په ابتدائی مرحلو کښې ده ولې بیا
هم فنی خامۍ پکښې ډېرې کمې په نظر راځی۔ پښتو ادب ددے

ځلمے شاعر نه د نور هېر څه اخستو طمع لرى ځکه هيله لرم چه خپل کوشش به جارى اوساتى چه د پښتو ادب لمن ته نورې هيرې ګلدستې ډالۍ کړى.

د الياس په دے مجموعه کښې هېر د ښائيسته خيالونو ازاد نظمونه هم شته د مثال په توګه مُسکا، بُت، په ړندو کښې کونړ باچاوى او داسې نور دغه شان په بندو نظمونو کښې بنګړى واله،انتظار، غريبه طبقه، کاش، سوچ ، سپرلے او داسې نور هېر خوندور نظمونه دى چه په لوستوئې تنده ماتېږى

ددے نه علاوه الياس هائيکو، قطعې او رُباعيانې هم ليکلې دى.

زهٔ د پښتو ادب لمن تهٔ د وسعت ورکولو د خاطره د الياس ددے ذيار ستائينه کووم زړهٔ مې غواړى چې هېر څهٔ مې پرے ليکلے وے. ولې لوستونکو ته به هم څهٔ پريښودل وى. نو له دے مرغه زهٔ د مينځه اوځم او د ا بحث لوستونکو ته پرېږدم چې الياس د شاعرۍ په ميدان کښې تر کومه کامياب ښکارى.

په هېره مينه

نثار محمد نثار
طوطه کان ملاکنډ ايجنسى
نېټه ۲۰۰۷

طوطه کان
04.01.2000

# غیـرت

پـه تـن مې اور بـلېږي يا لمبـه راويښـه شوې ده
يا چـرتـه د خـوب نـه محبوبـه راويښـه شوې ده

اوس بـه پـه سـرو سـترګو يه ملګرو دلته نه ګرځو
مو نږه کښې د حق غوښتو جذبه راويښه شوې ده

ځـئ چـې ترې د مينې او ښکلا سندرې جوړې کړو
نـن مـې د ربـاب تـار کښـې نغمـه راويښـه شوې ده

هسـې د وطـن نـاوې د قصـده ځـان اُوده کـړلـو
خـدائيـګـو مـاتـه پتـه ده چې ښه راويښه شوې ده

يـا ځښلـي ئې جـامونه د شرابو ښۀ بې دريغه دي
يـا داسـې راتـه ښکارې چې اُوده راويښه شوې ده

واګې د وطـن بـه مې د غيـرو لاس کښې ورنۀ کړم
پـه ژبـه د قـلـم زمـا تپـه راويښـه شوې ده



طوطه کان
28.12.1999



وریَځې لیمه زُلفی بانه چیړمه
ځمه ورځمه پښتانهٔ چیړمه
پریږدئ کهٔ خلق راته هر څه وائی
نن دې یادونه میلمانهٔ چیړمه
ته دې د ژمی په نمر مهٔ نازیږه
زهٔ لا د خپل اُوړی غرمه چیړمه
ویمه کهٔ چرته پکښې لاره اُوځی
خپل اسویلی سارهٔ سارهٔ چیړمه
الیاس ترې د یار په نوم نغمې جوړوم
بیامې تارونه نن د زړهٔ چیړمه

## یو شعر

چا پېرچل مې په پوښتنه د جانان شو
خاموشی مې تذکرې د مینې اوکړې



پورټ سعيد- مصر
01-03-2007



ساده وو ژوند چې ئې آسان يادوو
ګل په ژړا ژړا خزان يادوو

دُنيا په هاغې هم خوشحاله نهٔ وه
ماچې د خپل برخې آسمان يادوو

خلقو د ژوند سخته مرګی ته ويله
ما هاغه تريخ ساعت هجران يادوو

د عشق لمبو د مينې اُور واخستو
تا چې زما د ژوند داستان يا دوو

د هر چا شونډې په حرم رپيږي
ما به ګهړۍ ګهړۍ جانان يادوو

تا د ستم ازغی تيره کړله نور
ماچې ريښې ريښې ګريوان يادوو

چه په کتوئی سترګې نهٔ مړيدې
ما د هغه حُسن دوران يادوو

سبا به ئې دوه ګزه کفن جامه وی
خلقو الياسؔ د کلی خان يادوو



طوطه کان
17.07.2006



غیرت پښتو بــه راژونـدی کـړی سرفروش لیده شی
پښتون چې یو ځائے یو ځائے گرځی نو پُر جوش لیده شی

خلقــه زمــا د پـوهـې نــاپ لــه پیمــانې مهٔ گورئ
چې شـم په سترگو کښې مدهوشه راته هوش لیده شی

تــهٔ مې جـانــان تــهٔ مې جهـان تـهٔ مې ایمان ئې گرانــه
ستــانــه بغیر کــهٔ چاتــه گورم راتــه دوش لیده شی

سـر بــه مې بره وی خـونـازبه مې په مینه نـهٔ کړم
قیس ئې ورک کـړے دے مـنـصـور هم فراموش لیده شی

پـخـواچـی ذکـر بــه ئې هــر وخــت د بوستـان کولو
ستـا خبـر لـوخے الیـاسؔ نـن دومره خاموش لیده شی



# سپرے (PERFUME) آزاد نظم

غریب سړے کهٔ په هفته کښې یو ځل
چرته په خپلو سپینو پاکو جامو
ځانله د مینې نه خُوشبو پورې کړی
وائی چې زهٔ به هم په لاروکښې نن
د خپل بدن په ښائستوو عطرو
د خپل ماحول فضاخوش رنګه کړمه
وائی چې نن به زهٔ خوشحاله شمه
زما به خلق تعریفونه اُوکړی
چې ګوره څومره ښکلے بُوئې راځی
نن د فلانکی ماما د ځوی د تن نه
بخو ده ته څه پته ده
چې خلق داسې وائی
غریب سړی ته ګوره
په جامو سپرے لګوی



طوطه کان
24-08-2006



درست جهان درته حېرانه مه جبين ئې
لکه ګل لاسو کښې رېژې ګل ورين ئې

که په سر سترګو مې کښېنې ناز دې اخلم
ستا ادا داخِيستو ده نازنين ئې

ستا د مخ برابر نهٔ دی دُر ګوهر
دُر ګوهر مې پکارنهٔ دی مرمرين ئې

زړهٔ مې هسې تاله چرته درکولو
دلنواز ئې دلربا ئې دلنشين ئې

د جلی خفی معنې د الياسؔ نهٔ زده
د زړهٔ سترګو ته مې برېښې ته مبين ئې



طوطه کان
23-07-1998

# انتظار

د زړهٔ د درد د کمېدو په خاطر
ستا د خائسته بشر لیدو په خاطر
په توره شپه کښې بې اسرې پاتې شوم
د سپین سحر د ځلېدو په خاطر
ارمانی زړهٔ به ګور ته وړمه اشنا
چې زهٔ په طمع تهٔ بې غمه اشنا

ستا په لیدو به چغېدو مې زړګے
په تا پسې به خورېدو مې زړګے
چې ته رانغلے په ما ګرانه اشنا
لکه ماشوم به ژړېدو مې زړګے

یاد به دې څه وایه ساتمه اشنا
چې زهٔ په طمع ته بې غمه اشنا

لاړه اودهٔ شوله د خوب غېږه کښې
ځما ځوانی د لیونتوب غېږه کښې
که وی لوئې شوے خیر دے رابه شې
هغه قاتل د سرېتوب غېږه کښې

ځکه د زړهٔ وینې ختمه اشنا
چې زهٔ په طمع تهٔ بې غمه اشنا

څه په هجران او څه دیدار کښې تېر شو
څه په ازغو او څه په دار کښې تېر شو

ستا د راتلو ستا د لیدو په خاطر
ژوندون مې ټول په انتظار کښې تېر شو

ورځمه کېږه درنه وړمه اشنا
چې زۀ په طمع تۀ بې غمه اشنا

## قطعه

خلق مې خدایه لیونے لیونے بللی
لا مې خیرې ګرېوان نه دے ترلمنه

په مدار د ژوندګۍ کښې تلو به زده کړے
که زما د سوچ محور ته شوے د ننه



طوطه کان
16.07.2006



تاکلے راته پرېښودو تړون مې درنه غوښتے وو
د مینې لېونے وومه جنون مې درنه غوښتے وو

رېبلو دې غوخ غوخ پرهر پرهر دې راله راکړلو
ارمان د زړۀ معصوم ګرانه زرغون مې درنه غوښتے وو

دارته د منصور غوندې ناحقه ختے چرته شوم
بې وسه د ظفر غوندې رنګون مې درنه غوښتے وو

دې د پښتو نخوا خلقو مُلا زما لیډر کړلو
قاضي مې درنه نه غوښتو پښتون مې درنه غوښتے وو

ساده وومه ناپوهه چې مې تاله زړۀ درکړے وو
لمبه دې کړمه سیال نۀ شوم سکون مې درنه غوښتے وو

تاله مې د ژوند ښائسته رنګونه را غونډ کړی وو
ځان ته دې نژدے نۀ کړمه یون مې درنه غوښتے وو

حالاتو د ستم په چړه ټول زخمي زخمي کړمه
مرګ مې درنه نۀ غوښتو ژوندون مې درنه غوښتے وو



طوطه کان
16-07-2006



غوځ شومه لکیرې مې په تن رېباره اوختې
خزان وے تهٔ سپرلے نهٔ وے ازغن رېباره اوختې

اشنامې په خندا جوړې د بل سره لیدلے وو
خولې مې د تندې نهٔ چې من رېباره اوختې

ستا په لمسه تلے وو اؤ ستا په وینا رانغے
تهٔ جوړې د مینې مې دښمن رېباره اوختې

تالکه منصور غوندې داروته پېژنده چرته
ماغوندې بې وسه وے غمژن رېباره اوختې

ورشه میخانې لره رندانوته دا اووایه
سجدوله فرښتې مې په لمن رېباره اوختې

الیاسؔ له دې د ښکلو سترګو مست پیغام راوړے دے
ځکه مې بهانهٔ جوړې د فن رېباره اوختې





طوطه کان
05-07-2006



خلقو چې به ماته د وصال قِصه راواخسته
ما به ورته ستا د شینکی خال قِصه راواخسته

روپکښې غور ځنګ راغے مستۍ چپه چپه کړلو
ماچې سمندرته د هلال قِصه راواخسته

زۀ لکه منصور به تري خوندونه د ژوند اخلمه
زلفوکۀ دارونو دې د تمال قِصه راواخسته

پخوا پرې خلقو بانګ د کلی نه وئیلو
نن راته پښتون هم د کُلال قِصه راواخسته

ماتر ینه لوګے ستا د رخسار د لمبو اور کړلو
خیال مې لیونے چې د جمال قِصه راواخسته

نورئ هم ښائسته کړو د اسمان لمنې سرې شولې
تیاروچې کله نمر ته د زوال قِصه راواخسته

محمد الیاس الیاسؔ

اوښکې ترې په تر تر راروانې شوې غمژنې وې
ستړګو ته چې ما د پشکال قِصه راواخسته

يه خدايه بادشاه د زمانې ئې په ژړا کړلو
بخت مې سکندر ته د اقبال قِصه راواخسته

دواړو چې يو بل ته غلى غلى کاته کړى وو
نن مې زړۀ ته هاغه د تير کال قصه راواخسته

خيال ته مې د درست جهان نغمې راټولې شوې وې
ببغلوچې په خپله د خپل شال قِصه راواخسته

ذکر د الياسؔ ئې د دارونو په سر کړے دے
عشق مې سرو لمبو ته د کمال قِصه راواخسته



# لړې

د غره لمن کښې سم په شور بلېږي
ورته حېران شوم کور په کور بلېږي
ماوې لوګے دے چرته اور بلېږي

هسې نۀ ډوب چرته په شرم شمه
لکه د موم په شانې نرم شمه
ماوې ورځم ورته چې ګرم شمه

خونۀ لمبې نۀ غرغنډې وې پکښې
نۀ د بخرکوشان ذرې وې پکښې
اونۀ څکروتې تکې سرې وې پکښې

ماوې دا غرونه ستر شوی دی
یا دا خوړونه ستر شوی دی
کنه سیندونه ستر شوی دی



لارې د تـلو لـوړې ژورې وې
يـو مـې د پښـو تناکې ستړې وې
بـل خـواشـلېدلې مې چپړې وې

ګنې ماوې چې مخکښې څه دی ورځم
ہیر دی کۀ لږ خراب اوّ ښۀ دی ورځم
کـاږۀ دی نيغ اوکۀ اوږدۀ دی ورځم

خـو چې نـزدې شوم ورته خړې وې
تيـار لـوګے ور سم لـوخړې وې
پـه چـاپيـرچل ماحول کښې لړې وې



طوطه کان
23-05-2005

# درويشي

سوال منت زاری کول د رويشی نهٔ ده
د چادرتـه اودربدل درويشی نـهٔ ده

زړهٔ له ښائي عاجزی کهٔ ښهٔ خصلت دے
سر هر ځائے کښې ټيټول درويشی نهٔ ده

کـهٔ د نـفـس د ارمـانـونو قاتل نهٔ شوې
هسې ځان خاورې کول درويشی نهٔ ده

کـه مقصد دی تش شهرت وی د رېغه دريغه
ځان په شتوو کښې ورکول د رويشی نهٔ ده



## قطعه

څنګه چې شور غره کښې نخترې کوی
داسې جانان خورې خبرې کوی

چرته چې ستا د قدم خاپ تلے دے
هلته کښې نن سپرلے اخترې کوی

## قطعه

نۀ غواړو ګلاب ځوانۍ نه رنګ د زماني غواړو
مونږه ترېنه چنګ رباب ساقي اؤ ميخانې غواړو

عقل ترېنه نۀ غواړو د بخت د غوښتووړی يو
ژوند د بې غمۍ ځانله او مرګ ترې ليونے غواړو



کراچی
19-08-2001

# فرض که
## (آزاد نظم)

فرض کۀ تۀ مې چرته ياده شولې
فرض کۀ زړه مې ستا کتو ته اُوشی
زۀ به دخيال دُنيا ته منډه کړمه
هلته به ستا د ياد بنګلې وی چرته
زۀ به د مات زړګی د پاره ځانله
هلته د خيال په پښو کښې پرېوځمه
بيا به ترې لږ په موسېدلی شونډو
په تراړو تراړو ټکېدلی شونډو
ستا د ديدار يو څو لحظې اوغواړم
هلته کۀ خيال مې چرته هاں اوکړه نو!
زۀ به مُسکے مُسکے په مينه مينه
ستا دَ هر ياد سره اوږه په اوږه
د يو ځائے تلو خوندونه واخلمه خو
فرض کۀ تۀ مې چرته ياده شولې
فرض کۀ زړۀ مې ستا کتو ته اُوشی



محمد الياس الياسؔ

طوطه کان
11-05-2005



رنګین سپرلې مې کړه نشه د مست ماښام په رنګې
سترګې راواړوه کاسې ډکې د جام په رنګې

ظاهر مې مهٔ ګوره کهٔ تریخ ازغې ازغې لېده شم
ډک د خوږویمه دننه د بادام په رنګې

لېونې مینې راپغاره ملنګې کړه راته
لنډ شو منزل راته ملګرو د یوګام په رنګې

تر څو به ببېل یُو یَو تر بله داسې بېل په وطن
راځئ چې یو شو سره خپلو کښې د قام په رنګې

مخامخ هسې هم کتلې ستا ښائست ته نهٔ شې
په الیاسؔ بیا چرته حضور شه د الهام په رنګې



طوطه کان
03-05-2005



لږ ځـانتـه رانـزدے مې کـړه ارمـان مې کـړه چې څم
راغـلـے دې يـم بيـا درتـه جـانـان مې کـړه چې څم

د مينـې اللّـه هو راتـه پـه مينـه مينـه وايـه تـهٔ
مـاشـوم مې واخله غېږه کښې خپل ځان مې کړه چې څم

ښنګه تـهٔ چې آيـئـنه کښې په کتو ځان ته حېران شوے
هـم داسـې د بيـا بيـا خيشـت تـه حېران مې کړه چې څم

مـا ژونـد کښې تـش د مينـې روزګـار کـړے دے جانانـه
ګـل مې کړه سپـرلے مې کړه بـوستـان مې کړه چې څم

اليـاسؔ پـرې بـهٔ پـوهېږي ځاريده د مينې ښنګـه وي
سپيـلـنے مې کړه لـوګے ځـان تهٔ قربان مې کړه چې څم



PMA کراچی
28-01-2001

# غریبه طبقه

د ستړی ژوند په لوئې سفر اوده دی
د خان په مرسته درپه در اوده دی

خدایه د کوم قانون د لاندې زما
ن د وطن بچی نهر اوده دی

د هر په اوړی د غرمو په شګو
د سوری لاندې زوروَر اوده دی

یه خوار قسمتو خوشحالی جوړی کړئی
ظلم ورکیږی ستمګر اوده دی

د وطن پیغلو هله شور جوړ کړئی
ستړی نغمې مو په ګودر اوده دی

ماته پردے محل اونه ستائې
لامې زخمونه د ځیګر اوده دی



محمد الیاس الیاش

# نن سبا

چامې ګريوان اوشلوو
چا راله تن اوخوړو

ليونے کيږمه ځم
غم مې بدن اوخوړو

هله توبې اوباسئی
مړی کفن اوخوړو

په يخنۍ کار نۀ لری
خلق فېشن اوخوړو



طوطه کان
14-06-2006



د شوګيرو عادت ئې چرته دے نظر خوبوی
د غزل تارکۀ مې چېړم راله پرهر خوبوی

خوارۀ ګفتار ته ئې مرغۍ دی په چرچقو سحر
د زلفو سيورے ئې ماښام کښې زيړے نمر خوبوی

اللّٰه دی خير کړی پښتنې منګے په سر ايښے دے
بيا په سندرو زما هاغه شارګودر خوبوی

ستا د کاواکه لېونو سترګو نه ځار شم ګُلې
چې په کتو مې ستړے ژوند نوے سحر خوبوی

هسې دې زخې په وجود جانانه خوښې نۀ دی
د جبين خال دی په آسمان پورته قمر خوبوی

يو مې ببګا ستا د راتګ لارې کوڅې ځارلې
بل مې سرې چغې د پښتو درمانه سرخوبوی

يا څوک پښتون چرته د غرۀ لمن کښې تا يادوی
يا د پښتو خبرې کېږی چې خيبر خوبوی

ساقی قسم کۀ ستا د جام مستی سرور راکوی
الياسؔ خوږې خبرې د دلبر خوبوی



## حرص

زما کور کښې ولې نشته ستا په کور کښې خرېړے دے
بس په دے وړه خبره جنګ کښې نخښتے هر سړے دے

څوک د پلار په مرګی خاندی څوک د ورور وینی څښی
عجیبه دنیا ده ربه عجیبه اړے ګهړے دے

## مومن ته

کۀ نازونه د بې نیازه جانان یوسے
ډک د نور په رنمایۍ به دې عقبیٰ شی

کۀ د ځان د معرفت طلب دې اوکړو
معرفت به دې نصیب د لوئے اللّٰه شی





رنګ مې د ارمان غېږې له راوله
غلے مې حېران غېږې له راوله

ژوند مې په یادونو کښې تېر کړے دے
مړګ مې د جانان غېږې له راوله

مینه خپلېدل کۀ په بېلاتو وی
ګټه د تاوان غېږې له راوله

نور دَ سپرلی ناکړ دي نۀ شم کتے
حُسن دَ خزان غېږې له راوله

دم مې په پښو کښې نور د تلو نشته
ستړے د کاروان غېږې له راوله

تندے په زمکه لږوه الیاسه
څان ته دې آسمان غېږې له راوله



20-12-2000



يو ځلې نهٔ ده په بيا بيا مې وژنی
قاتلې ستركې د اشنا مې وژنی

د تختيدو لارې مې بندې شولې
خدايه د خپلو په رضا مې وژنی

خواره زلفان د يار ښائسته اننګی
كله هغه اؤ كله دا مې وژنی

ماوې چې دلته به ساه واخلمه خو
دا ستا يادونه پكښې لا مې وژنی

نن د الياسه ئې ستركې واړولې
ملګرو داخل په ريښتيا مې وژنی



بحیرهٔ عرب
08-12-2006



خوبونه یوسی ځان سره د چا لېونۍ سترګې دی
داستا لېونۍ سترګې اشنا ستا لېونۍ سترګې دی

تیارې پرې راخورې دی په سپوږمۍ کښې رڼا نشته
خو دلې ورته تا جوړې نن بیا لېونۍ سترګې دی

داما چې کله کله غلی غلی په خندا کړی
کمال د هیچا نهٔ دے د اشنا لېونۍ سترګې دی

ساقی پیالۍ دې لرکړه هاغه کیف سرور ئې نشته
خیال کښې مې پرتې د دلربا لېونی سترګې دی

پخپله ورته اوګوره کهٔ تاته اشنا نهٔ ګوری
الیاسه پښتنې دې بې پروا لېونۍ سترګې دی



طوطه کان
27-10-2004



په شپېو ترې نه د اوښکو باران درومي
بې ديدنه چې راځي سترګې محرومې

د پښتون په جامه تور يم لګېدلے
پښتنې سترګې مې هيرې کړې معصومې

بې نوا ترې جوړې بيا وو نن راغلے
تر اسمانه مې سلګۍ تللې مغمومې

ستا نظر به ستا ښائست ته رابللې
نغمې چرته وې زما دومره محکومې

څۀ خو شته پکښې ملګرو چې لګيا دے
د الياسؔ خبرې نۀ دي بې مفهومې





ما وربښي کړه خدايه سمه او دا غر صدقه
اشنا تر اوسه رانه غواړي مرور صدقه
تا د دنيا د ډاره پريښې بې آسرې وومه زۀ
ما خو دنيا وه ګرځولې ستا د سر صدقه
ستا د ديدن تګے به نور د تانه څۀ او غواړي
بس په کچکول کښې ورکوه دې د نظر صدقه
ستا د جبين د خال خندامې تته نۀ شوه ليدې
ماد سپوږمۍ په نامه ورکړله د نمر صدقه
اول دې ورکړم د دنيا د تريخ دستور په ګوتو
اوس رانه غواړې مې ګريوان په اوښکو تر صدقه
ما هم د مينې په نوم ځان د اور لمبو ته نيوو
تاوے خليلؑ شه او بُتان کړه د آذرؔ صدقه
ورځه تندے يار ته په زمکه په بيا بيا لګوه
الياسه کۀ چرته يې نن اومنې د در صدقه



جبرالتهر
22-02-2007

قيوم منزل پيښور
24-10-1998



د دار په سر چغې وهم ليونے
پرېږدئ چې مړ شمه بې غم ليونے

راشه پوښتنه مې د حال اوکړه
کنې والله درپسې مرم ليونے

د يار په مينه کښې واپس روغ شو
خلقو ناري کړلي چې کم ليونے

خدايه ما هسې ليونتوب خوښووو
تا رانه جوړ کړلو سم دم ليونے

ستا د اُلفت ستا د مُسکا د وجې
الياسؔ ياديږم چم په چم ليونے



طوطه کان
05-12-1998

# کاش

يوه ورځ مور راته دُعا کوله
وئيل ئې خدائے دې کړه کامياب بچيه

چه د غريب د حق پوښتنه اوکړے
خدائے دې نواب کړه د نواب بچيه

يوه ورځ مور راته دُعا کوله
وئيل ئې نصيب دې شه ثواب بچيه

چه د باطل توري تياري لري کړے
خدائے دې رنړا کړه د افتاب بچيه

يوه ورځ مور راته دُعا کوله
خدائے دې ځواني کړه د درياب بچيه

چې خونه ورانه کړے اغيارو لره
مسته چپه شې د سېلاب بچيه

بچي ته د مور دُعا قبلېږي ډېره
کاش! چې ما هم په دے يقين کړے وے

خو زۀ وړوکے ووم زۀ نۀ پوهېدم
چې مې په دے باندې آمين کړے وے



محمد الياس الياس

PMA کراچۍ

# د شالدا په نوم خط

اُمید لرم ښه به ئې په خوند تېروې
له ما په شانې به تهٔ ژوند تېروې
د خورې وطن د ننګ ناموس د پاره
د زهرو ګوټ به لکه قند تېروې

څنګه چې سیند د کلي ستا په خوا کښې
چپې چپې شي غور ځنګونه وهي
داسې زما خواکښې په ډېره مستۍ
د سمندر چپې تموپونه وهي

دا نور حالات کهٔ اورېدل مې غواړې
د زړهٔ زخمونه کهٔ ګنډل مې غواړې
د خدائے نه چې غواړې پکښې ما یا دوه
کهٔ په سیالۍ سره لیدل مې غواړې

چې هر ماښام پکښې جنت جوړیږي
هاغه د کلي لاله زار څنګه دے
چې پرې د چم کوڅې رنګینې ښکاري
هاغه معاذ عادل مددار څنګه دے

څۀ نوي تازه درته وئیلے مې وے
بس نور څۀ نشته چې لیکلے مې وے
قلم بندومه اجازت راکړه
نشته الفاظ چې تۀ ستائیلے مې وے



اصف آباد - کراچی
12-05-2001



درد ئې رالـه راکـړلو قـرار ئې رانـه واخستو
مینـه مې ظـالمـه وه دلدار ئې رانـه واخستو

جام کښې د ساقی راته مستی حیرانه پاتې شوه
سترګې دې چلبازې وې خمار ئې رانه واخستو

نـور دغه ظـالم خزان زما د ژوند نه څۀ غواړی
حُسن ئې تـالـه کـړلو بهـار ئې رانـه واخستو

دالا د قـاتـل اشـنـا نـرمی وه پـوهـه نـۀ یم
صلیب ته ئې نزدې کړمه نو دار ئې رانه واخستو

لاړه د پښتـو د ادب نـاوې کـونـړه پـاتې شوه
خـدایـه د الیـاسؔ شـان قلمکار ئې رانه واخستو



محمد الیاس الیاسؔ



## طوطه کان
16-12-2000

په موسېدو شی سپین سحر جوړوی
لیمه د یار سپرلی اکثر جوړوی

د خیال خبرې مې زړهٔ چرته منی
ستا په کوڅه کښې راله شر جوړوی

د اسرافیل شپیلۍ به ویښ مې نهٔ کړی
د بنګړو شرنګ به دې محشر جوړوی

ستا د نظر قاتلان نهٔ پوهیږی
ماته سپرلے د دار په سر جوړوی

تهٔ دې د خیشت د زوره څهٔ خبرې
په زړهٔ مې کربښې ستا نظر جوړوی

د هیربدو طاقت دې نهٔ لرمه
ستا جدائی مې په زړهٔ غر جوړوی

الیاسه زړهٔ له دلاسې دې ورکړه
مینه به داخل ستانه نر جوړوی



طوطه کان
02-07-2000

# سوچ

نۀ په آسمان چرته پرقا ښکارېده
نۀ د وربځو پرې غوغا ښکارېده
د اُوبو څاڅکے اُوبه خور له نه وو
چې په پټو زمونږ د کروخت شو

د چمن بوټی په ریګونو خړ وو
فطرته ستا په ستمونو خړوو
قطرې قطرې شبنم پرې نۀ ښکاریدو
سپرلیه بیا د ستمګر وخت شو

وعده ئې ماته کړه په غلا لاړه
زما د مرستې نۀ په شا لاړه
خپلو همزولو راته لار اُونیوه
چې د دښمن سره مې کله د دغر وخت شو

د کوخې سپو به دې غوپا کوله
مئین زرګی به مې درزا کوله
د چم وږو به دې په کانو ویشتم
چې په کوڅه دې د ګزر وخت شو

محمد الیاس الیاس

څـهٔ ښـه نيـولې ده حيـرانـه ښکـاری
اُوس پـه خُـلوص خپله ستو مانه ښکاری
اقـرارد ميـنـې ئې نـن داسـې اوکـړو
سـائيکـل دې پـرېږده د مـوټر وخـت شو

درپسـې کـړل مـې ټول قـضـا مونځـونـه
هـم مې بـربـاد کـړه خپـل اشنـا وختونـه
تـهٔ پـه بلـی بـانـدی را اُونـهٔ ختې
بيـا مـې نـن تيـر د مـازيګـر وخـت شـو

بـچـی بـچـی لـه مـې ځـپـلـی اخـلـم
د وطــن پـيـغـلـولــه والـی اخـلـم
چـې د خـوارانـو زړونــه اوخـانـدووم
روژه تـيـرېـږی د اخـتـر وخـت شـو

داسـتـا پـه شـانې خـو بې پتـه نـهٔ يم
وهـل بـه خـورم پـه سـوك او لتـه نـهٔ يم
زه بـه دې مـرسـتـه ښـهٔ پـه جـار کـومـه
چـرتـه کـهٔ سـتـا ګـلـه د شـر وخـت شو

لاخو وختی دے خپل سوچونه کوه
مونځ له به روسته ځے خوبونه کوه
د عزازیلٔ په جال کښې اونختمه
د بانګ نه پس چې د سحر وخت شو

د ژوندون تموله اثاثه دې واخله
واخله مونیا اؤ خلاصه دې واخله
شبخه دروغ درته وئیلې نهٔ شم
زهٔ درنه ځمه د دلبر وخت شو

ښهٔ سم سړے وے ته د کار لالیه
عشق درنه جوړ کړلو بېکار لالیه
د اشنا مینې ورته پرې نهٔ ښودے
ستا چې د زدکړې اؤ هنر وخت شو

د خپل اولس پکښې دردونه لیکه
خوږې نغمې خواږه فکرونه لیکه
الیاسه پاخه دُنیا اولړزوه
ستا د شعرونو د اثر وخت شو



طوطه کان
03-07-2000

# سپرلے

چې د ماحول زره زره ورپکښې
سم د سپوږمۍ شان پرقېدلی نۀ وی
چې د پنجرو بندی مرغۍ ورپکښې
سم په چړچقو چغېدلی نۀ وی

چې مې احساس پکښې ژوندے غوندې شی
چې ټول ماحول نغمې نغمې غوندې شی
زۀ به ښېګړه ورله هله منم
چې مې وړوکے خیال زلمے غوندې شی

بس خو چې مینه په هر لور خوره شی
خېر کۀ زخمونه مې لږ زور واخلی
ستا د ښائست غوټۍ چې ګل نۀ کړی
دغه سپرلے دې ربه اور واخلی



اصف آباد ۔ کراچي
04-06-2001

# چې تا ته نۀ شي کتے

د خپل ارمان په تکل
د سپين سحر په تلاش

سم د ماښامه سره
د چا د کور په تاخ کښې

وړه ډيوه بله شي
يا په سرو ايرو کښې

د سرو لمبو په خاطر
چرته بخرے تود شي

يا د ساقي په جام کښې
د چا د مستو شونډو

خوارۀ خوندونه لاړشي
يا د زاهد په ژبه

چرته د هوش نه مخکښې
د جـانـــان نـوم راشـی

یـا د ربـاب پـه تـار کښې
چـرتــه د مـاتـو زړونـو

خـوږې نـغمې جوړې شی
د غســـې زهٔ هـــم ګـلـې

ستا د ښائست په باغ کښې
ځـانـلـه ګـلونـه ګـورم

ستـــا د رُخســـار پـه رنګـې
د شــرمـــه ډک ګـلـونــه

دومــره نـــازک ګـلـونــه
چـې تـــاتــه نـهٔ شی کتے
چـې تـــاتــه نـهٔ شیکتے



طوطه کان
06-07-2006



ژونـد کښې حـقیقت غواړه د خیال قصوته مهٔ ګوره
رنګ لټوه نـور اؤ د جــمــال قصـوتــه مــهٔ ګوره

ستـورې بـــه پـړقیږی خـو دا بل رنګــه رنړا کوی
تـور دے خـو پـه سپین جبین د خال قصوته مهٔ ګوره

داسې راتـه ښـکـارې چې سپوږمۍ وریځو پټه کړه
پـروت وی پـه نـازک بـدن د شـال قصوته مـهٔ ګوره

څـانـده پکښې خیر دے که ئې لږ ساعت له دارشی تار
زلـفـې درنــه تــاؤ شـولـې د تـال قصوته مـهٔ ګوره

الیــاســه پــه دیـوال لـکـه د نوې میـاشـت رااُوختـه
ورکیږی لـږ ســاعـت لــه د هـلال قصوته مـهٔ ګوره

## یو شعر

لـکـــه مـوم د اور لـمبـو تـــه ویـلــی نـــهٔ شـوم
زمــا عشـــق وو ستـــا د حُســن کـمـال نـــهٔ وو



طوطه کان
18-05-2005



غـر يـو ووم نـيولې په سلګو کښې شومه
درنــهٔ راستـونْ چې په راتلو کښې شومه

خـْنـُک چې سبــا نـمر پــه ختو لېده شی
دأسـې بــه تــا تــهٔ پـه کتو کښې شـومـه

زولـنــــی نشتـه خـو زندان غوندې دے
بـنـدی د زلـفـو پــه تيــارو کښې شـومـه

هستــی تــهٔ هـر ځـائے بـه مستی ګډېده
ورک چې ســاقی به په کاسو کښې شو مه

فـنـــا پــه تــا پسې د درســت جهـان نـهٔ
لـکــه شبـنـم د نـمـر ختـو کښــې شـومـه

مـرْګ ګـنـې تـل زمـا پـه خـْنـْک کښې به وو
ښـهٔ ده چې خـدايـه په توبو کښې شومه

چـرتـه چې شـور به ستا بنګړو جوړ وو
اليـاسؔ رالـوئـی هـاعـه نغمو کښې شو مه



بحیره عرب
13.03.2002

# مُسکا

یوه لحظه خالقه
ماته د مرګ نه مخکښي

د یار مُسکا نصیب کړے
هغه خندا نصیب کړے

چې ستا سیرلے هم ورته
ګوته په خُلهٔ پاتې شی

چې د ساز ښکې نغمې
ورته اودهٔ پاتې شی

چې حسرتونه ورته
لمبه لمبه پاتې شی

چې نظرونه ورته
په ننداره ياني شي

چې سرهٔ څامونه ورته
نشه نشه ياتي شي

بس چې تصوير ئې شکلي
زما په زړهٔ پاتې شي

نو يوه لحظه خالقه
ماته د مرګ نه مخکښې

شکلي خندا نصيب کړې
ديدار مُسکا نصيب کړې



طوطه کان
03-02-2000

# شک
## (آزاد نظم)

ریخې ریخې ئې لوپټه په سر وه
په تن جوړه ئې وه خیرنه غونډې

پُوندې ئې چاوْدې وې پیزار ئې نه وو
وړې چاچۍ ئې راته اونیولې

نن ئې زمانه هم په ټک بازار کښې
په یره یره باندې سوال اوکړو

ما ورله هم د جیب نه دوه آنې
څۀ په اخلاص اوښۀ په مینه ورکړې

زما پرې شک د بې وسۍ راغې
ماوې د دې به چرته پلار نۀ وی



## هائیکو

ستا د نظر خورو نغمو ته تاوېدمه داسې

څنګ چې چاپېره د یوې نقطې نه

د پنسل څوکه په پَرکار تاوېږي



## هائیکو

مینه مې کړې ده کوووم به ئې تل

بس کۀ په دې وړه ګناه مې وژنې

راځه چې لاړ شو د مقتل په لورې



طوطه کان
20-12-1999



عشق ئې د رنګونو د ابشار مخه نیوې نۀ شي
مینه لېونۍ مې د خمار مخه نیوې نۀ شي

دومره د تاو ېک دے چې نظر سیزي
اوښکې ئې د سترګو د رخسار مخه نیوې نۀ شي

دومره د وطن د پېغلو ګوتې مې نازکه دي
ګل لره ورځي خوبس د خار مخه نیوې نۀ شي

مونږ سرۀ د کلي ماشومان په ېله شوي دي
داځلي مو وا ورتي د چا پلار مخه نیوې نۀ شي

زه ګورے خپل حق د فرعونانو نه غوښتې شمه
منصور غوندې بې وسه به د دار مخه نیوې نۀ شي

اوګورئ دا خړې خړې خاؤرې هم شنې شویدي
دا ځل خزانونه د بهار مخه نیوې نۀ شي

ځکه خو د حُسن رنګينۍ ټولې صحرا کښې دی
پېغلې د وطن مې د بازار مخه نيوې نۀ شی

ستا د محبت قېدی بس ستا د خوشحالو په نوم
ستا راتلو ته خندګه به د لار مخه نيوې نۀ شی

دادے د سحر نه انتظار کښې دی ولاړ يمه
چا وے چې الياسؔ د ښکلی يار مخه نيوې نۀ شی

## لويه خدايه

بيامې سترګې د جانان شوې قدم بوسه
ښکلے ځائے دے پورته نۀ شے پکښې اوسه

په عمل خولا حاصله ستا رضا وه
بس رحمت ته دې پراته وو بې تپوسه



PMA کراچی
31-07-2000



درپسې مې ګلـه چـا ړ دالر اؤ بر کړه
هسې زیـات مې خپل غمونه د ځیګر کړه

د رُخسـار لـمبې دی بلې سـاتـه ګـلې
مـاښـامونـه د ژوندون زمـا سحر کړه

بـدې سترګې د رقیـب کـۀ درتـه ګوری
نـظر مات لـه دې ګـلونـه تاؤ د سر کړه

سپوږمۍ هر وخت په وربځو پټه نۀ وی
تـورو زلـفونـه دې سپین مخ رابهر کړه

هـاغـه یـار بـاندې بـه ولې نـۀ نـازیږم
وئیـل ئې مـورې لېونـی لـره مې ورکړه

ښـکلے یـار مې پـه بلې بانـدې ولاړ دے
خـدایـه ژونـد رالـه د مینې مازیګر کړه

سـاه مـې تـا پسے د تـنـه جـدا کیږی
لـږ پـه مینـه راتـه ښکلیه نظر کـړه

چی الیاسؔ سرۀ د مینې نیت دې نۀ وو
عـالمونـه دې پـه څـۀ پسې خبر کړه



طوطه کان
10-07-1998

# ستا په راتګ

زما د نیمګړی ارمانونو قاتل
ستا ګل ورینه خندا جوړه شی

ستا د قاتل نظر به څه وائمه
زما معصوم احساس ئې اووژلو

زما د سترګی ژوندون سترګی نغمې
زما په خیال کښې لا تر اوسه ګرځی

ستا په راتګ ترې ترانې جوړې شی
ګله راپیښه کوه کله کله



پیښور
14-05-1998

# اراده

ویم چې د رنګ نه ډک کړم
ځانله د ژوند خوبونه

بیا پکښې ډوب کړمه ټول
د کائنات فکرونه

او مرګ ته اووائم چې رانهٔ شې
د خدائے د پاره په دے لوری ګوَرے

خیال کوه مینه مې رسوانهٔ کړے
رقیب مې هر وخت راته ګوری ګوَرے



طوطه کان
08-07-1998

# د محبت نه مخکښې

د محبت نه مخکښې
زما زلمې احساس اوده غوندې وو
د خپلواکۍ نغمې ئې نه وئيلې
زهٔ د دردونو نه خبر نهٔ ووم
ما د غمونو دُنيا څهٔ پېژنده

د محبت نه مخکښې
ماستا ښائسته ښکلې تصوير جانانه
په تصور کښې جوړولې نهٔ شو
ما د جفا دستور ليدلے نهٔ وو
زهٔ د نفرت په قانون څهٔ پوهېدم
د ژوند خوارهٔ تراخه مې نهٔ پېژنده

د محبت نه مخکښې
زما زلمے احساس اودهٔ غوندې وو



طوطه کان
05-12-1998



ګُل پـکښـې نشتـه د ازغـو ېـکـه ده
مـاضـی مـې تـولـه د سـلګو ېکه ده

زمـا پـه زړهٔ کښې د ژونـدون فلسفه
د څـوبـې رحـمـه تـلوَسو ېـکـه ده

غېر به همېش دلته تېټ سترګې ګرځی
زمـا دره د شـاه زلـمـو ېـکـه ده

ګېـدړ څـنـګـے دې راتـه مـهٔ ځـلوه
خیـالـی دُنیـا مـې د زمرو ېـکـه ده

د تـخیّل پـرواز دې ښـکتـه نـهٔ کـړې
کـعبـه د لـوَړو مُـنـارو ېـکـه ده

د مـلاکـنـډ غـرونـه نـغمې نـهٔ وائـی
شـاعـری څـنګ مې د مصـرو ېکه ده

د ګُل په ځـائے مې نن په کاڼوو اُولی
د یـار کـوڅـه د لېـونو ېـکـه ده

الیاسؔـه مهٔ ئې چېره بـرخېره نهٔ شی
هـره سـلګـی دې د نـغمو ېکه ده



طوطه کان
11-01-1999



فراق نـزدې شـولـو ژړېـږمـه ځـم
سم پـه سـلـګـو تـرې روانېږمه ځم

د تهمتـونـو پيټـې نـه شـمـه وړې
د يـار کـوڅـه کښې نـه اودرېږمه ځم

جـرګـې تـرې تـولې بې نـوا راغـلې
نـن ورتـه پښـو بـانـدې غـوړېږمـه ځـم

د ژونـد تيـارو کښې د منزل پـه لټـون
د لېـونـو پـه رنګ خـنـدېږمـه ځـم

اليـاسؔ دې د مخ رنـا تـه هـر ماښام
لکـه پتـنګ غـونـدې سـوزېـږمـه ځـم



طوطه کان
11-01-1999



څنګه به څم چې ښکې ګلۍ شوې د منزل په لټون
راتــه همبوارې هـم نـالـۍ شوې د منزل پـه لټون

د زړهٔ د کـومـې پــه اخلاص بــه دې رابـلمه خو!
بس کهٔ راپیښې خوشحالۍ شوې د منزل په لټون

پــه نـظر نــه راځی پــه غتو غتو ګورم ورتــه
د پښـو تـناکې مې پُولـۍ شوې د منزل په لټون

سپرلی ئې پـه معصومو اننګو کښې خندا راوړه
سم پـه خـندا ورتـه کـلـۍ شوې د منزل په لټون

د انتـظـار لارې تــه ګـورې د حسرت پــه نـظر
پـېغلې راپـوتــه پــه بَلۍ شوې د منزل پـه لټون

چـرتـه الیاسؔ پکښې هېر نهٔ کړې وعده ماتې نهٔ شے
کهٔ دې نـصیب یاره سیالۍ شوې د منزل په لټون



طوطه کان
15-06-1999



ژوند په وږمو اُودهٔ شو ساز په نغمو اُودهٔ شو
ته چې مې خيال ته راغلې درد په سلګو اوده شو

ماشوم زړګي مې ګُله ستا د خندا په ارمان
ستا د مُسکا په ارمان ستا په قِصو اُودهٔ شو

ستا د راتګ په طمع ستا د ليدو په ارمان
نن تهوله شپه مې زړګي په دلاسو اوده شو

ستا د فراق د لاسه ستا دا الياسؔ ليونے
ستا د سيالى د پاره نن په لمبو اُودهٔ شو





طوطه کان
28-12-1999



از غن ماحول چې مې بهار شی هله
د زړهٔ زخمونه به قرار شی هله

د منصور یاد به پرې تازه کړمه زهٔ
بس چې ستا زلفې زما دار شی هله

خپل کارته هر یو سړے کاروائی
کار چې پردې شی نو بیګار شی هله

لار د منزل دومره اُوږده خونهٔ ده
سړے چې اُودریږی اِیسار شی هله

د زړهٔ درزا مې لږ سړوا غوندې شی
آشنا په سترګو کښې چې قار شی هله

بیا کهٔ الیاسؔ ته لېونے وائی خبر
خیری ګریوان چې ئې تار تار شی هله



کراچی
29-05-2002



پاتې نن په سرو سترګو بېلتون شولو
تلو کښې چې ښائسته جانان راستون شولو

عرش کښې پسې چغې فرشتو کړلې
بیا مې د چا یاد زړۀ کښې زرغون شولو

فکر به مې څنګه غزونې کړی
ستا چې سبانے ماښام پرون شولو

تا ته تصور کښې په سجدو شومه
خیال مې د دُنیا خیال کښې مجنون شولو

نۀ منې چې څۀ درته الیاسؔ وائی
دالا څنګه ستا د خیال سمون شولو



کیماړی کراچی
14-10-2002



د رنګ تصویر لټومه ځم د خوند نقشه جوړومه
د خېښت په مصور به مې د ژوند نقشه جوړومه

بې خیاله فکر وړې شهزاده به پکښې ګرځم
په چغو د پرهر به مې د قند نقشه جوړومه

ستا به د خوږې مینې داستان ورته راواخلمه
بیا به په تهوتې زړهٔ د پیوند نقشه جوړومه

راز دې د پردې راته افشان کړه چې لږ پوهه شم
یا عقل لیونی تهٔ به د بند نقشه جوړومه

ستا خواله به د خیال په مست تالونو کښې درځم
الیاسؔ به پکښې ځانله د مېوند نقشه جوړومه



طوطه کان
10-11-2004

# په رندو کښی کوڼ باچا وی

چی الف او ب مې زده کړه
ماوې لاړمه هوښیار شوم
اوس به خلق راوړی خپلې
فیصلې دژوندون ماله
زۀ به بر سرته په کټ کښې
درونـد قاضی د کلی ناست یم
لاس په نام به واړه خلق
راته وائی آوجی ښۀ جی
بالکل ټهیك ده ته صحیح وې
خو ځوك نشته چې نن ما ته
حقیقت ښکاره زما کړی
زۀ ناپوهه ووم جاهل ووم
زما دوه مسئلې زده وے
خو ریښتیا خبره داده
چی رندو کښې کوڼ باچا وی



محمد الیاس الیاسؔ



طوطه کان
04-11-2004

# شاعر

اول لتمون د څو لفظونو کووم
بیا ئې جوړښت په ردیفونو کووم

د خیال خبرې پکښې اوستائمه
یا پکښې ذکر د وختونو کووم

څۀ چې لیدله به مې
هاغه لیکله به مې

دُنیا ته حال د زړګی
په جار وئیله به مې

خو چاپېرچل مې راته
نامه د ږم راکړه

د شعور قدر نشته
ماتوم قلم راکړه



## قطعه

خبره چې په تلو کښې دې نن ستغه غوندې کړه
زما دې خوږ زړګی درپسې چغه غوندې کړه
قِصه هاغه د خیشت به یوځل بیا شروع کووم
جانان چې په چل وَل کښې آغه دغه غوندې کړه

## قطعه

په ځان کښې نهٔ ځائیږی سیال لیدهٔ شی
ستا په کتومې زړه خوشحال لیدهٔ شی
کومې چې ستا په خنګ کښې نهٔ تیریږی
هاغه لحظه راته سم کال لیدهٔ شی

## قطعه

سپوږمۍ وه رانه هېره د هلال په تماشه ووم
ستا د زلفو په تیارو کښې ستا د خال په تماشه ووم
یو لحظه کښې ئې جوړ کړے وو محل ماله د مینې
خیال زما په تماشه وو زهٔ د خیال په تماشه ووم



طوطه کان
01-06-1998

# ایټمی دهماکې

اول بـه هـر ځـائ کښې ناکام یادېدو
هـم خـطـاکـار او هـم بدنـام یـادېدو

د فیـرنـګیانـو غـلامان وو خدائیګو
تـش بـه آزاد مـونـړه پـه نام یادېدو

د بې وسۍ پــه زولـنـو کښې بندوو
تـل بـې ګـنـاه بـه ګـام په ګام یادېدو

هـغـوئی پـه خپله وو بې وسـه ربـه
چـرتـه چې مونږ په احترام یادیدو

خـونور په سترګو کښې مې نم خدایه
لیـدلـې نــهٔ شـولـو د غـم خـدایـه

چې د غـوری نـه پس شاهین والوتو
جـوړ پــه اغیـاروشـو مـاتم خدایه

نن د وطن هر يو زلمے مې ويښ دے
اُوس ترې ورځمه وينې ځکم خُدايه

چې زړهٔ د غيرو په يوتهق اُوچوی
ورته هزومه ايتهم بم خدايه

اُوس د نړی ټول کافران ژړيږی
هم د هندو قوم مشران ژړيږی

بچے بچے د غيرو غيرو ربه
په آزادی د پاکستان ژړيږی

وائی آزاد شوه مسلمان ملکونه
امريکه روس او هم جاپان ژړيږی

د پاکستان په دهماکو ملګرو
د کلنټن سره عنان ژړيږی



طوطه کان
28-12-1998

# بنګړي واله

په مکر نهٔ پوهېدله کليواله پښتنه وه
چې ته مې راغلې بنګړي واله پښتنهٔ وه

په تورو سپينو سرو کړو ټکې کړے
پېغلو ترې ليچې په بنګړو ټکې کړے

روانه په خرڅون خپلې سوداله پښتنهٔ وه
چې ته مې راغلې بنګړي واله پښتنهٔ وه

آواز ئې کوو واخلئ بنګړي دي
درکووم اودريږئ سرې دي

دا څومره حيانکه مزوب حاله پښتنهٔ وه
چې ته مې راغلې بنګړي واله پښتنهٔ وه

چې ورے زړګے پکښې له تانه
الياسه زار ئې د خندانه

واپس روانه کلي ته خوشحاله پښتنهٔ وه
چې ته مې راغلې بنګړي واله پښتنهٔ وه



بحرالکاهل
22-09-2007

# لویه خدایه!

چې بلې کړم د فکر او شعور لمبې
شور مې د قلم په ژبه راوله

مخ کۀ رانه بېرته جانان واړوو
هله مې ماتم په ژبه راوله

نۀ شائی لمده په مې پلیتو دا
تندې له زم زم په ژبه راوله

راحت بغیر د سختو چالیدلے دے
صبر زما زغم په ژبه راوله

خپله فیصله مې په تا پرېښې ده
دُعا مې د کرم په ژبه راوله

راز کۀ د حکمت پکښې لیده غواړې
گفتار الیاسؔه کم په ژبه راوله



محمد الیاس الیاسؔ




طوطه کان
16-07-2006

# د مور په نوم

خدایه د هرغمه ئې هر ځائے کښې آزاده ساتې
د محبت وړه دُنیا مې پرې آباده ساتې

کۀ د سپرلی د خوشحالو نسیم پرې لگی خېر دے
تۀ ئې د سپېره سپېره خزان د سپېره باده ساتې

چې په ژوندون واړه رنگونه ستا د در اووینی
په خپل رحمت کښې ئې هر وختی خدایه یاده ساتې

مور هم ایمان دے هُم جهان او هم جنت دے زما
خدایه همیش ئې په دُنیا کښې ژوندئی ښاده ساتې

گونجې پرې رانۀ ولې خدایه کۀ هر څو غصه وی
ورته تندے د الیاسؔ هر وختې کشاده ساتې



# سُکون

د سکون چغې د عشق سلګو کښې پټې
د دُنیا پسې په منډه نه مونده شی

دا ستا نونه به د عشق بیرته تازه شی
د الیاسؔ غوندې کۀ هر سړے بندۀ شی

## قطعه

عشق کښې اور لمبې غواړی کمال ته رسیده
خوب غوندې لیدل وو ستا جمال ته رسیده

دغه مرحله د دیدن بل رنګه هیبت لری
ستورو ته اسان وو خوستا خال ته رسیده



طوطه کان
11-07-2006



کـۀ پـه ګُل د نـزاکـت عـکسونـه ښکاری
ستـا پـه مخ هـم د قدرت عکسونـه ښکـاری

زړۀ مـې ګـوره تـمـاشـه کـۀ د سیـرت کړې
آئـنـې کښـې د صـورت عـکسـونـه ښکـاری

تـا کـۀ نـۀ هُـم رابـلـلـم خـو زۀ راغـلـم
پـه نـظـر کښـې دې د سـت عـکسونه ښکاری

د غُـصـې نـه ئې رُخـسـار د اور لـمبې شوې
پـه رښـتـیـا جـوړ د قیـامـت عـکـسـونـه ښکاری

پـوره نـۀ شـوه سـتـا د سـترګـو بادشـاهی وه
ارمـانـی مـې د حـسـرت عکسونـه ښکـاری

لـوئـې آسـمـان بـغـیـر د سـتـنـو نـه ولاړ دے
نـاپـوهـانـو تـه دولـت عـکسونـه ښکـاری

مـصـور چـرتـه د روح کـرښـه راښکے شی
دا الیـاسؔ تـه حـقیـقـت عـکـسـونـه ښکـاری



## طوطه کان
05-07-2006



ګوته په خوله يمه حېران شپهٔ ده
تېرېږي چرته د هجران شپهٔ ده

تګ تر منزله د جانان وو زما
خدايه په لاره د کاروان شپهٔ ده

د غرهٔ په سر کښې د تنور لمبې وې
خلقو ويله د شعبان شپهٔ ده

په نيمه لار کښې جانان پرېښودمه
لوټ شومه خدايه د تاوان شپهٔ ده

خلقه زهٔ خپل جنت ته اور سيدم
نن مې په کلي د جانان شپهٔ ده

د ونو شنې پاڼې وچېږي خدايه
داسې ښکارېږي د خزان شپهٔ ده

الياسه د مينې بوراګان دې څهٔ شو
د ګُلو باغ کښې د رېحان شپهٔ ده





PPS پېښور
1997

# سترګې

چې مې وژني دا خونرېز سترګې د چادي
دا ښائسته لکه ګل رېز سترګې د چادي

چې رسا د زړهٔ په سر زما ښخېږي
دا ناترسه لکه نېز سترګې د چادي

د لېندې په رنګ په غشوچې مې اُولي
دا قاتل لکه چنګېز سترګې د چادي

چې مُدام په تصور کښې مې پرتې وي
دا نيازبينې د مکېز سترګې د چادي

دا چې تهٔ ئې نشه کړې ئې الیاسه
د نشې نه دا لبرېز سترګې د چادي








PPS پيښور
24-12-1997

ګُل خبري اوکړلي ګلزار خبري اوکړلي
کله چې محفل کښې ښکلي يار خبري اوکړلي

قربان به پرې زهٔ دواړه سر او مال کړمه
بس خو کهٔ يو ځل ئې د اقرار خبري اوکړلي

دَ ساقي په لاس کښې جام پاتې حيران شو
نن ئې دومره په تاتار خبري اوکړلي

ګُل او ازغي به پکښې يو زړګيه ځنګ پيژني
چې خزان هم د بهار خبري اوکړلي

چې ترغوږو ئې غزل د الياس راغي
نو بُلبُل هم د چغار خبري اوکړلي



محمد الياس الياس

طوطه کان
10-07-1998

# چې زۀ هم سيال شمه د نورو سره (آزاد نظم)

په د ورکوټي دنيا ګۍ کښې ربه
چې زۀ هم هېر کړمه خپل تېر غمونه

چې زۀ هم دغه د سلګو ژوندون
لږ په خندا خندا کښې تېر کړمه

چې زۀ هم اووينځم د خپل لمن نه
د تهمتونو دا تور تور داغونه

چې زه هُم دغه د سيالۍ لمحې
چې زۀ هم دغه خپل رنګين خوبونه

په دې غمجنو سترګو اووينمه
چې زۀ هم ډک د ارمانونو زړګے

لږ د سکون په غېږ کښې اووينمه
چې زۀ هم خپله مينه خپله کړمه

ځکه خو ډېره موده پس خالقه
زۀ يو نيمګړے غوندې سوال کوومه

جام او جانان راله يو ځائے راکړه
چې زۀ هم سيال شمه د نورو سره



ورېوکے اختر طوطه کان
28-12-2000



تــا چــې د زړهٔ ریبـلـو چـل زده کـوو
مـــا د ســلــگــو ژړلـو چــل زده کـــوو

روژه په خوله مې ستـا سيالۍ ته کاته
مـــا د اختـــر کـــولـو چـل زده کـــوو

تــا مــې تېرے کـړلـه سـېـوا غـمـونـه
مـــا د پـــرهـــر گـــنـډلو چـل زده کـوو

د زلـفـو مـينځ کښې مې سپين مخ ته کاته
مـــا د ســـحـــر ليـدلـو چـل زده کـــوو

خپـلـو خپـلـوانـو مـې هـم خپل نـهٔ کـړمـه
مـــا پـــه پـــردو د خـپـلـو چـل زده کـوو

د غم مشکښې مې پيئلې ستا د زلفو په تار
مـــا د غـــزل ليـکـلـو چـل زده کـــوو

تــاچــې الـيـاسؔ بــه رنـځـوو پــه وعـدو
مــا تـــرې د درد زغـمـلـو چـل زده کـوو





پـرېږدوئ چې ګُـل شي پسرلے ځمه شيندمه
د زړۀ پـه پـرهـرونـو مې لمبې ځـمه شيندمـه

پيغـام نـوی دُنيـا تـه مې د مينې پـه کښې راوړو
ښائسته پکښې خوږې ښکلې نغمې ځمه شيندمه

دستـور دے کـۀ اِخـلاص د پښتـنـو دے نـۀ پوهېږم
پـه لاره کښې ګلان د ميلمنې ځـمـه شيندمـه

اے بـس کـړه ستمـګـره د زړۀ سـره لـړ پُخلا شـه
اُوښـکې مې نـن بيـا درتـه جرګې ځمه شيندمه

الياس دې بيا دَرونې سحرنغمو ته لږ خوشحاله کړه
تـر څو بـه مې چـاپېره شـوګيرې ځمه شيندمه





## اتفاق

ته که هیر ئې خو په هیرو کښې هم هیر شوے
زه که یو یم خو د قام سره یو لګ شوم

تا پخپله کناره کړله د قام سره د څنګ نه
اُوس به ماته داسې نه وائې چې سپک شوم

## د انصاف چغه

څنګ چې ترې زما بچې خبر نه وی
دغسې به ستا سو هم اختر نه وی

واورئ د وطن ژمے که تود نه شو
بیا به په آسمان کښې ګورے نمر نه وی



کیماړی کراچی
19-09-2002

# جانان

پورته په آسمان کښې
یو د مینې بادشاه ناست یے
وائی واخلئی که څوک غواړی
راحتونه خوشحالیانې
څکه خلق ورپسې دی
ترینه خښت او سرور غواړی
څوک ترې رنګ اؤ خمار غواړی
څوک محل اؤ مینار غواړی
څوک ترې غواړی ځانله ژوند د ملنګیه
څوک ترې زر اؤ دینار غواړی
څوک ترې غواړی دَمستیٔ دَرباب چغې
څوک ترې زړهٔ د خاکسار غواړی
زهٔ هم ځانته فکر یوړم
لاس مې اُوچت کړل سوال مې اُوکړو
ماله صرف جانان راکړه
ماله صرف جانان راکړه



## قطعه

چرته چې باطل د حق ملګرے شي
هلته کښې رواج د مينې زور لرى

مرګ دې خير دے اُووائى رُعب دار ځانته
ژوند هم عجيبه غوندې کښې شور لرى

## توبه

ورته سپيره تندے که تيټ مې نۀ شو
هغه دې خدايه کعبه نۀ ګڼمه

کۀ ستا ئې عرش په رقيبلو نۀ کړو
دغه توبه مې توبه نۀ ګڼمه



جبل علی۔ دُبئی
17-08-2002



د خېښت نـه راته ډکې زمانې د سترګو جوړې کړه
مُسکا پکښې خوره کړه ترانې د سترګو جوړې کړه

بيـامې پکښې نيت سجدوته کړے دے د سترې ژوند
ځکه ساته بانړه دې بُت خانې د سترګو جوړې کړه

والـلّـه کـۀ مې سـاقی تنده مـاتيږی پـه يو ګوټ
لـږ زور نظر له ورکړه ميخانې د سترګو جوړې کړه

جبـر د حالاتو دې پـه تـريـو نظر پوه کړے يم
ځـه کـنـه اُوس نـورې بهـانـې د سترګوجوړې کړه

اليـاسؔ پـکښې د ځـان او دَ دُنيـا نه ورکيده غواړم
بيـا د خـوږ نـظـر هـاغه کانې د سترګو جوړې کړه





اُردن
14-04-2002



د ښار په ټک ووړمه خو لاړم په مېره اُوختم
د وصال شپه کښې بد نصيب په شوګېره اُوختم

شاهي زړګی له به کچکول په لاس کښې ورکړمه خو
ستا د اُلفت په پيمانې کۀ زۀ پوره اُوختم

تۀ چې دَ خيال په نيلی ناسته وې ځوانی دې ستائل
ورته بې خياله فکر وړے شهزاده اُوختم

ستا په نظر کښې د بُوډۍ د تال رنګونه څۀ شو
ورته پخواچې به زۀ غلے شان اُودۀ اُوختم

الياسؔ به هسې نازېدم په خپل رنګين خيالونو
تولـه دُنيا راپسې خاندی ديوانه اُوختم



طوطه کان
03-07-2000

## شینکې
(آزاد نظم)

د سینـد پـه غـاړه د څو ورځـو راسـې
پټ پټ پـه زړهٔ کښې ژړېدمـه ربـه

لـکـه د اُور لـمبـه لـمبـه ولاړ ووم
د هر پـه میاشت کښې مې سوچونه کول

مـاوې بـادرو بـه خدایـه څنګ تېرېږی
مـاوې بـاران بـهٔ خـدایـه کـلـه کېږی

چې سوکړه ختمه شی سپرلے غوندې شی
هـر خـوا پټو کښې به شینکے غوندې شی



## طوطه کان

31-12-2000



يـو ګـهړۍ هـزار ګـهړۍ شـي چې تهٔ نهٔ ئې
تُـولـه شپـه مې خونړۍ شي چې تهٔ نهٔ ئې

تهٔ به ځان له چرته بل ځائې کښې خندېږې
زمـا سـر دړۍ دړۍ شـي چې تـهٔ نـهٔ ئې

شـا بـه مـرستې لـه مې زر رادرومه ګلې
هـر سـړے سـر پـه تـګـۍ شي چې تهٔ نهٔ ئې

د يـخـنـۍ نـهٔ مې وجـود پـه رپـېدو شي
طـوطـه کـان راتـه واړۍ شي چېتهٔ نهٔ ئې

يـارودونـه مـې د سـترګـو نـه بهيـږي
يـا مې زړهٔ تـنـړۍ تـنـړۍ شـي چې تهٔ نهٔ ئې

سـرهٔ غـرمـهٔ وي د سُـور اُوړي خو دلبـره
پـه الـيـاسؔ تـيـره جـړۍ شي چې تـهٔ نـهٔ ئې



یوم آزادی
1997

# دُعا

په دُنیا کښې ربه راکړې — د عیسیٰ غوندې مکان
په هوا مې تخت روان کړې — لکه تخت د سلیمانؑ
سوج سمجهه پوهه زما — برابر کړه د لقمانؑ
اسماعیلؑ غوندې له تا نه — تن بدن زما قربان
ابراهیم غوندې په اُور کښې — راته جوړ کړه ګلستان
رنګینۍ د سپرلي راکړه — موسم کښې د خزان
د قارون غوندې مال راکړه — سخا راکړه د عثمانؓ
عمر لوئي د خضرؑ راکړه — په طلب کښې د جانان
ماته اُوښایه خالقه — خپله لاره د عرفان

د افتاب په رنګ خدایه
دا زړګے مې کړه روښان



طوطه کان
08-09-2001



نن لا څۀ بل رنګه دے چې ځنګه به وی څنګ سبا
سترګو کښې راوړی اشنا مې نوې نوې رنګ سبا

خوارۀ د لېونی مینې زما به هم څۀ کم نۀ وی
اودې کړو کۀ چرې لړ زما په نامه ننګ سبا

څۀ دې نننی وعده راتلو راتلو کښې پاتې شوه
څۀ دې د راتګ انتظار نور کړی په ماتنګ سبا

خبر کۀ دې مغروره ئې په حُسن او ځوانی باندې
تېېږ ساته نظر لکه د لوئې ملنګ ملنګ سبا

هسې دی الیاسه نن په خُلۀ باندې توبې راځی
اخلے به منمه پرې نامه چرته د چنګ سبا



جبرالټر
11-01-1999

# د جبرالټر په لیدو

دیدن ئې راته تېرې د اسلام خبرې اوښودې
ښکلا ئې راته واړه په ماښام خبرې اوښودې

لمن کښې ئې تراوُسه آدنور مشال بلېږی
وربځو ئې په سر راته تمام خبرې اوښودې

دے ځائے کښې د طارق د تُورې شرنګ دے لا تراوُسه
دے ځائے راته د خپل اصلی مقام خبرې اوښودې

حسن ئې زما په ذهن داسې غلبه شولو
فکر مې قلم ته د الهام خبرې اوښودې



طوطه کان
31-05-2005



څومره ښائسته خوارۀ وختونه وو اشنا مېئن ووم
د چا په غم کښې ژړېدمه زۀ په چا مېئن ووم

چې مخامخ وو يو تر بله چېه خوله ولې وو
ښکارېده داسې ته په ما او زه په تا مېئن ووم

چې په ولاړه ځارېده ترې د دُنيا رنګونه
ستا د جبين د خال په آ ښکلې مُسکا مېئن ووم

هسې مې مۀ رټه صادق يمه شک منه نۀ شې
درته قسم خورمه والله چې په ريښتيا مېئن ووم

آچې زمانه هم په پته ئې زما زړۀ وړے دے
ستا د کاواکه ليونو سترګو په غلا مېئن ووم

ژوندمې داستا د لېونې مينې په نوم تيرو و
قسم په خدائے کۀ زۀ الياسؔ به په دُنيا مېئن وو



کلی ته د کراچی نه په واپسئی
14-11-2002



مستي سرور شمه جنون شمه زهٔ
تاته کتو کښې په سکون شمه زهٔ

د ديدن وخت کښې د جانان په کوڅه
اوښکې بهيږي چې راستون شمه زهٔ

ته مې نظر کښې تور ملين اوګنړه
خبر دے کهٔ نورو ته زرقون شمه زهٔ

قسم په خدائے چې د لاسه به يمه
ستا کهٔ يوه سلګۍ ژوندون شمه زهٔ

د الياس مينه به دې هُم خوښه شي
ته کهٔ ليلئ شې اؤ مجنون شمه زهٔ





21-12-2000

زيړه پاڼه وچه شوې د خزان شوم
چې ورګډه کله د عشق په ګلستان شوم

لوپټه د يار په قبر مې جهنډې کړئ
زۀ شهيد د ښکلو سترګو په ارمان شوم

د زندانه مې اوس چرته يره کېږی
چې په دام د تورو زلفو بنديوان شوم

لکه ستورى چې د نمر د مخى ورک شى
تاپسې دغسې ورک له دې جهان شوم

حقيقت د ليونو راته څرګند شولو الياسؔه
ننداره چې په دا خپل ځيرې ګرېوان شوم



عمران هاوس کراچی
11-11-2001

# بُت

ماوے چې یار دے زما
ښکلے دلدار دے زما
د زړۀ قرار دے زما
اُوس به ئې دیدار کومه
د ښکلو مستو سترګو
خو په اول نظر کښې
دومره نشه شومه چې
تاب مې په زړۀ کښې نۀ وو
دومره بې خوده وومه
ورته سجده مې اوکړه
ماوے دا یار دے زما
ښکلے دلدار دے زما
د زړۀ قرار دے زما
اوس به ئې دیدار کومه
خو بیا ناڅاپه غونډې

زړګی مې چغی کړلي
ماوې دا یار خو نهٔ دے
دا چرته بُت غوندې دے
سرمې راپورته کړلو
بیا په توبو شومه زهٔ
ماوې چې غیر ته سجده
حرام حرام دی خو بس
تندے مې بېرته ټيټ شو
بیا مې ایمان راوړو
بېرته مې چغې کړلي
ما هاغه بُت اومندو
کوم چې د ډيرې مودې
کوم چې به تل ترتله
زما په زړهٔ کښې پروت وو



طوطه کان
24-10-2004



ګورے راته بیا ځۀ له حیرانه په تا ځۀ اوشو
دومره تریخ خو نۀ وے ته جانانه په تا ځۀ اوشو

هسې دې د خیال مانۍ زما په زړه کښې جوړې کړې
خاورې شوې ایرې شولې ارمانه په تا ځۀ اوشو

تا خو به زمانه بغېر ژوند ته ژوندون نۀ وئیلو
اوس نۀ راځے خفه ئې جوړې ګرانه په تا ځۀ اوشو

ټک کوه په مخکښې ځه په روسته روسته ځۀ ګورے
منزل ته لاره پاتې ده کاروانه په تا ځۀ اوشو

د خلقو درته سترګې وې چې تۀ به جوړ پښتو ګټې
لیک نیمګړے پرېږدے الیاسؔ خانۀ په تا ځۀ اوشو



طوطه کان
05-04-1998



په پېړ مخې دلربا باندې میئن شوم
لېونے ووم په سودا باندې میئن شوم

په خندا پسې ژړاوی دا متل دے
نو بیا څۀ له په خندا باندې میئن شوم

چې اقرار کښې دې انکار کولو یاره
ستا په دې یوې ادا باندې میئن شوم

چې بابار پکښې پښتو ستائی ملګرو
په شعرونو د حمزآ باندې میئن شوم

زۀ الیاسؔ د خپله ځانه ګیله مند یم
چې له تا شان بې وفا باندې میئن شوم



# مینه

مینه د خیال یو سمندر دے
کۀ سیلۍ ده اؤ طوفان دے

د اظهـــار وړه جـذبـــه ده
کـــۀ نیمګړے یو ارمان دے

دا سیلاب د ترمو اُوښکوکۀ د سرو شونډو خندا ده
راتـــه اووایـــه زړګیـــه مینـــه داکـــۀ مینـه دا ده

دا دَ سپیـن سـحـر رڼا ده
کـه دَ تـورې شپې تیارۀ ده

دا شـغـلـه دهکـۀ بـخـرے
کـــۀ دَ زړۀ د اُور ایـــره ده

دادَ غمه خوب خندا ده کۀ جنون دے او سودا ده
راتـــه اووایـــه زړګیـــه مینـــه داکـــۀ مینـه دا ده

دا د سوی زړهٔ آواز دے
که قصه ډېره د راز ده

د رباب چیړلے تار دے
کهٔ نغمه ډکهٔ د ساز ده

دا آغاز د لېونتوب دے کهٔ د خوږ زړونو د رزاده
راته اووایه زړګیه مینه دا کهٔ مینه دا ده

د کافر زړهٔ بُت خانه ده
کهٔ د مات زړګی حرم دے

دا سیالی ده خوشحالی ده
کهٔ بس صرف نوم د غم دے

دا د زړهٔ د جوش چغار دے کهٔ د سترګو نه پیدا ده
راته اووایه زړګیه مینه دا کهٔ مینه داده






طوطه کان
24-10-2004



شور او غو غا څۀ ګورې اُوس چنګ دنُنیا چرته دے
تشې خاورې لوتې دی اُوس رنګ د دُنیا چرته دے

زۀ خو خوبولے ستا د مینی اللّٰه هو وومه
نشته اُوس ئې ګورم زۀ پالنګ د دُنیا چرته دے

عشق مې لیونے د سود اؤ زیان خبرې نۀ ګوری
د سره پکښې اُودانګی خو ننګ د دُنیا چرته دے

شته دے خو آداب د خپلیدو ئې مونږ له نۀ راځی
فضا به نغمه ګوکړمه خو ترنګ د دُنیا چرته دے

ستا د مینې خاؤره کښې ئې خاؤرې ارمانونه شوه
ستا مینه کښې ورک الیاسؔ ملنګ د دُنیا چرته دے





طوطه کان
17-07-2006

# مینې ته

چاپېره ترې د مینې پتنګانو طوافونه کړئ
فکر روښان کړے مې فانوس دې پاکې مینې ته

صورت د آئینې په رنګ هر څیز ته په جار ښائی
اخلاص مې وربخښلے تقدُس دې پاکې مینې ته

خلیلؑ د اور لمبو کښې د ریحان ننداره کړې وه
الیاسؔ ځکه ستا هم زړګے مُوس دې پاکې مینې ته



12-05-2005

# خدایه چې څۀ به کیږی!

عجب وختونه راغله
تمیز د ښو او بدو
لاړې ورکیږی ربه
خپلو لی مینه نشته
د یو بل غم کښې شریک
خواخوږی پاتی نۀ شو
خدایه چې څۀ به کیږی
مخکښې به څه پیښیږی
بغض کینه زیاتیږی
عجب وختونه راغله
هر سړے منډه کښې دے
وائی چې څنګه به ځم
مخکښې د رور عزیز نه
په مال او زر کښې ځانله
د څو روپو په خاطر
ګرځی ایمان خرڅوی



محمد الیاس الیاس

خدایه چې څهٔ به کیږی
مخکښې به څهٔ پیښږی
عجب وختونه راغله
خپلې درنې اوچتې

د نورو سپکې وایو
ضمیر اودهٔ دے زمونږ

لاسونه ګیر دی زمونږ
خدایه چې څهٔ به کیږی

مخکښې به څهٔ پیښیږی
د بل خبرې کوو

پردئ سندرې وایو
خپل هر څهٔ هېر دی زمونږ

د رور ولې یادونه
رنګونه پاتې نهٔ شُو

خدایه چې څهٔ به کیږی
مخکښې به څهٔ پیښیږی



# قطعه

قـافـلې مې د صليب په لاره درومی
ځـۀ لـه تېښتـه مې کـولـه د زندانه

پرَدو ځان ته نزدے نۀ کړمه پردے ووم
خپل دې ورک شی خپلولر کړمه د ځانه

# قطعه

جنت مې جوړوو ځانله جهان مې جوړولو
تـصـويـر پـه مينـه مينـه د جانان مې جوړولو

ستـا زلـفـو کښې ګـلان مې په مزه مزه تومبل
سپرلے ترې ښکلے ښکلے په خپل شان مې جوړولو



# پښتنې خاورې ته

اے د غيرتي اولس نيازبينې پښتنې خاورې
ډيره موده پس مې ئې ليدلې ميلمنې خاورې

ساه د خوشحالۍ مې روح کښې ستا په ليدوګډه شوه
ستا شان کښې به وائمه رنګينې ترانې خاورې

تاراته په غيره کښې غيرت اؤ پښتو اوښوده
تاته به درځار کړمه داواړه زمانې خاورې

ستا د لوړو غرونو د لمن په مسته سيمه کښې
اوس هم ماته ښکارې مينه ناکه افسانې خاورې



# مرګ او لاس نيوه

مخلوقه چپ شئ يو اعلان واورئ
د مرګ خبر د يو انسان واورئ
چې مړے ښخ شي نو خوړو ملګرو
بيا د مُولا صاحب بيان واورئ

په ونو بوټو او حيوان راځي
حق دے مرګے په هر انسان به راځي

څوک د دې مړی جنازې له لاړه
څوک د صابن په خوند مزې له لاړه
چې دا په څۀ کله او څنګه مړ شو
څوک ئې بس دغه اندازې له لاړه

چا د غيرت او بهادرۍ کولې
چا ئې قِيصې د بيمارۍ کولې

راته د ورايه خندېدلے وو
ما هم پرون سحر ليدلے وو
ډېر بهادر او غيرتي ځوان وو
په ټولو رونړو کښې ډېر ښکلے وو

نـورې خبـرې خېـر دې بيـا بـه اوکړو
مـلګرو لاس اُوچت کړئ دُعا به اوکړو
زهٔ هـم د کټ په پيارمـه غـلې غونډې
کښـېناستم هېر زيات غم زپلې غونډې
د غـم خـوارۍ الـفاظ وئيل مې غوښته
شـونډې مې خدائيګو رپېدلې غونډې
بيــا مــې پـه ژبـه دا الـفـاظ راغـلـه
غـم کښـې شـريک ئې هېر په ناز راغله
يـو دُعــا بــه او کـړو لاس اُوچت کړئ
غم کښې شريک ئې هېر په ناز اُوچت کړئ
اللّٰه دې ئې اُوبخښې هېر ښهٔ سړے وو
اُوچت کړئ خېر بيا يو ځلې لاس اُوچت کړئ
په روغ رنځور غريب اؤ خان به راځي
حـق دے مـرګـے پـه هر انسان به راځي



1998

# پښتون ته

قربانی ورکړه دې د تن پښتونه
جوړکړه رنګین دا خپل وطن پښتونه

کهٔ د اغیارو په اسره پاتې شوے
داغ به دې لګی په لمن پښتونه

پاڅه په خپل قام باندې ننګ اوکړه
اوتړه سر باندې کفن پښتونه

ستا د مړانې اؤ غیرت نه لوګے
زما سلګی د زنکدن پښتونه

قسم په خدائے نور دې لیدلے نهٔ شم
په سترګو سرو باندې ویرژن پښتونه

تورهٔ د خدائے لقب دې بیا اوګټه
اے د خالدؓ نمسی تورزن پښتونه

ستا په ناموس ځان ټوټې ټوټې غواړی
د الیاسؔ وینه د بدن پښتونه



